# د زړه لمه

# شعري ټولګه

غلام محمد کامه وال

# کتاب پېژندنه


د کتاب نوم . د زړه للمه

وېناوال . غلام محمد کامه وال

کمپوزر . شفق

چاپ وار . لومړی

چاپ کال . ۱۳۸۲ ل / ۲۰۰۳ م

چاپ شمېر . ۱۰۰ ټوکه

د انتیر نتټ په مخ ترتیب او ډیزاین کوونکي . سمسور حبیبي

# غزل

مـینه د اشنا چې را په زړه شي بـیـا
سـمـه رڼا ورځ توره تیاره شي بیـــا

او ښکې مې راتویږي بې اختیاره شي
خیال ته مې رایاد هغه کاته شي بیـــا

خدایه مه کړې څوک مبن په مخ د چا
تل به یې روزګار په ویرانه شي بیـــا

وي چې دا نازونه د خوږو ســــترګو
څه به مې کیسه د ژونانه شي بیــــا

هیرې کړمه وایمه چې هیر بـــه شي
ستا خواږه غمونه راستانه شي بیا

کــلـــه چـــې دیدن د اشنا وکړمه
ډیر خواږه غمونه مې په زړه شي بیا

۶/۱۳۶۳

د زړه للمه — غلام محمد کامه وال

# مورته

هغه ښکلي تود ه غيږه
هغه ښکلي خوږه غيږه
خدايه څه شوه
هغه څه شوه
چې زخمي زړه ته درمل وه
چيرته لاړه
لا خوزه په تمه تمه
د راتلو څارمه لاره
هغه څه شوه چې مدام به
زموږه کلي
ښکاريده ور باندې ښکلي
هغه يو لپه دعا وه
هغه نيکي وه
هغه تل پيرزو پيرزو وه
هغه تل خو ښي خوښي وه
هغه ډير ه مهربانه
چې تياري وې پرې روښان
چې ډيوه وه چې مشعل وه
تل زخمي زړه ته درمل وه
هغه ډيره وه فقيره

خو په میندو کې وه میره
خدایه څه شوه
چیرته لاړه
بیا رانه غله پر دې لاره
په رښتیا چې هغه مور وه
تل زما د زړه ټکور وه

۱۳۶۴/کابل

د خپلې خوږې مور په مزار

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

پـــه خیال کې مـــې اشنا دیدنونه ځي راځي
له سترګو مـــې د اوښکو بارانونه ځي راځي

په زړه بانـــدې رایادې ستا د میني ولولې شي
په تورو تیـــارو شپو کې ستا غمونه ځي راځي

د ښکلـــــو محبت کې ملنګي څه پیغور نه ده
په عشق کې داسې ورځې ماښامونه ځي راځي

یو ځل د رقیب مخکې راته وخانده موسکی شه
بیا څه که له هر خوانه پغورونــــــه ځي راځي

د سترګو په کاسو کې لړ شراب د میني ورکړه
نن بیا د کامه وال زړه ته دردونه ځي راځــــي

۱۳۶۳/کابل

د زړه للمه          غلام محمد کامه وال

# غزل

نـــــــن مې عجـيبه تماشه وليده
ښکلې رانــــۍ مــې په سجده وليده

حيران حيران دې ننـــــداري ته ومه
چې ستا په ښونډو مې غوسه وليده

ځار شم له دا سي عـــــبادته ځار شم
ما دې په سترګو کې کــــعبه وليده

باور به وکړې که به ونه کــــــړي ته
نن مې په مينه مينه ښه ولـــيـــده

قسم په خداى چې دغه سترګو زما
د کامه وال غيږ کې خوره ولـــيده

د زړه للمه

غلام محمد کامه وال

# غزل

ځکه مـــــو په نیک نظر منلي دي
ښکلي خو د خداي پاک نازولي دي

نه راځي په خـــوله چې درته ووایم
زړه مې څو ګیلـې درته سا تلي دي

زموږه په نصیب کې خندا چېرته ده
خدایږو مو ږه ټول عمـــر ژړلي دي

مستو ببر سرو مـــــــبارک مو شه
بیا څو لیوني پـــــه دار ختلي دي

خاوري کا مه وال شو د اشنا د پښو
څوک دې مــــرحلې ته ر سدلي دي

غلام محمد کامه وال — د زړه للمه

# غزل

پوه چې ستا د مـــــينې په کتو شو مه
ښکاري لېونـــــی د نيمو شپو شو مه

خيال او تــــصور مې ستا ملګري شو
ګوره چې عــــادت په شو ګيرو شو مه

ای نصيبه بيا مې ورولــــې څــلـــه
هلته خو زه پيښ په حادثو شـــــو مه

زه هســـــې د لارې د سر ګل و مــــه
پورته کړمه پيغلو د کمــــڅو شو مه

پوه نه شوم چې دا بــه وي پيرزو د چا
څنګه زه ميلمه پـــــه اننګو شو مه

نن چې بې موسکا په شونډو پر بوته
هلته زه بيا شـــــمار په ليونو شو مه

سټو کنډو ، پکتيا /۱۳۶۷

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

یاره ستا د پل مخه سره ښکاري
خدایږو داجل مخه سره ښکاري

ځئ تر ې لېونو یارانو پورته شي
نن خو د مقتل مخه سره ښکاري
ما چې تصور ورباندې وکړلو
نور د مستقبل مخه سره ښکاري
زعرده ارادې مو ساه نیولې دې
ځکه د تکل مخه سره ښکاري
ستا د شو خو سترګو اثر چېرته دی
بیا مې د ګوګل مخه سره ښکاري
ښکلې ننګرهار کې غوټۍ مړاوې شي
بره د کابل مخه سره ښکاري

خلکه کامه وال باندې بیا څه وشول
نن یې د غزل مخه سره ښکاري

۱۳۶۷/ننګرهار

# په ادیرو شو بدل

څه په ایرو څـــــه په لمبو شو بدل
وطن خــــو لاړ په ادیرو شو بدل

زه یــــې د کوم زخم ټکور وکړمه
چې سمه او غرمې په زخمو شو بدل

سبــــا مو لاړو تورو شپو وخوړو
عشقه منزل مـــو په تیارو شو بدل

اوس یــــې تپو زړګیه څله کوې
هــغـــه محل په ویرانو شو بدل

ژبه مې ګونګه خو په سترګو وایم
ژوند مو یارانو په سلګو شو بدل

دا د ګــــلــــونو مالي چیر تللی
چې ټول چمن مو په اغزو شو بدل

۱۳۶۸/کابل

د زړه للمه غلام محمد کامه وا

# غزل

څه راغلې مجــــبوري ده دې وطن کې
د مرګي حکـــــمراني ده دې وطن کې

نه بس مړه یو نه ژوندي یو دا مونږ څه یو
زندګـــــي یوه قحطي ده دې وطن کې
چې موسکا مو ترې یوه شېبه و نه کړه
دا د چا مـــــهربانې ده دې وطن کې
چې نه سوز شتـــه نه ژړا او نه خندا ده
دېره شوې خامـــوشي ده دې وطن کې
دا خپل ځان راته پـــــردی ښکارېږي
په خپل کور مساپري ده دې وطن کې
یو د بل وینو ته ناست یـــو خوشالیږو
عجیبه مسلـــمانئ ده دې وطن کې
ډیرې مینې بـــینوا په کې پرتې دي
هره مینه ارمانـــــي ده دې وطن کې
کامه وال په کې لـــه غمه لېونی شو
خلکه جوړه تر بګني ده دې وطن کې
لوګر/ ۱۳۶۸

د زړه للمه غلام محمد کامه وا

# ویرجن ماښام

د سبا پر اوږو پنډې
د ویرجن ماښام تیارې دي

لرې لرې اوږدې لارې
بیا زما په وینو سرې دي

څه تنکي ژوبل ارمان مې
ورته ګورئ څونیمګړ شو

څه تر خه غوندې سیلۍ وه
د امید ستر ګې ړندې شوې

څه زلمي زلمي سرونه
دستم په اور کې سوزي

زه د پېغلو پېغلو هیلو
جنازې خاورو ته وړمه

۱۳۶۸/کابل

غلام محمد کامه وال

د زړه للمه

# غزل

ځوک د حالاتو زیر او بم پـــــسې ځي
زما قدم ستا پـــــه قدم پســې ځي

تصـــور راوړه بـــــیا د چا یــادونه
زړه مې روان شو چېرته غم پســې ځي

چــېرې چې ستا یادونه درومـــي ګلې
دا لــــېونی زړګی مې سـم پسې ځي

چې بر ناحقه مې په خولـــه وي مدام
ځکه مې ژبه پـــه صــــنم پسې ځي

نــــن پـــــر حالاتو زوروز وختو
چې کامه وال په خپل قلم پسط ځي

۱۳۶۸/کابل

# د ګلونو جنازې

کوم قتل ور بـــــاندې اور دی لګولی
چې سپرلـــي کې د ګلونو جنازې دي

چې اغيارو ورته جګ کتلی نه شول
نــــــن د هغو غیر تونو جنا زې دي

نه پوهـــیږم چې دا ولې کا مه واله
دې وطــن کې د يادونو جنازې دي

کابل/۱۳۶۸

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غوښتنه

ای د رڼا قاتله
ای د خوښۍ زواله
له تانه کرکه راځي
زموږه کلي ته نور
دبېوسۍ مرګونه مه راوله

۱۳۶۹/ کابل

د زړه للمه    غلام محمد کامه وال

# سترې کېلې

دې حادثو ته فـــکر وړی یـــمـــه
هسې وعدو ته فـــکـــر وړی یـمـــه
ما ته به زما غرور تر مر گه نـــه شـــي
ستا نا کردو ته فکر وړی یـــمـــه
زه خو د ژوند په خوږو پوه نه شـومـه
دې ورځو شپو ته فکر وړی یـمـــه
راځنې هیر یې نه کړ غم د مـیـنـــې
ساقي کاسو ته فکر وړی یـــمـــه
راته کړي جوړ د زړه په سر داغونـــه
دې شنو خالو ته فکر وړی یـــمـــه
چې له وختونو سره منډې وهـــــي
هغو شملو ته فکر وړی یـــمـــه
په کې تا لا وا لا شوې ټولې غوټۍ
دا ســــې سپرلو ته فکر وړی یمه
دانه دانـــه مې شي راټوېې پر مخ
سترو کېلــــو ته فکر وړی یمه
راته یادیږي کا مــــه واله مدام
هغو کتو ته فکر وړی یـــمـــه

کابل/۱۳۶۹

د زړه للمه　　　　غلام محمد کامه وال

# د هجر شپې

سترګې مې ډکې ډکې کیږي چاته وژاړمه
دا خپل وطن راته یادیږي چاته وژاړمه

چې کله کله شي رایادې د خاپوړو کوڅې
زړګی مې تل پسې خوږیږي چاته وژاړمه

هغه دیرې هغه حجرې هغه جرګې د کلي
یوه شیبه مې نه هیریږي چاته وژاړمه

تش د وصال په تمه تمه باندې شپې تیروم
د هجر شپې نه سبا کیږي چاته وژاړمه

نن کامه واله د خوشال او د روښان وطن کې
پښتنې مینې قتل کیږي چاته وژاړمه

۱۳۶۹/لغمان

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

سترګې چې واړې په یو وار لـــیونۍ
کړي بیا په سترګو کې ګوزار لــیونۍ

د چا خاطر کړه لېونۍ لـــیـــونـــۍ
لګوي لاس په ســـمـــــه لار لېونۍ

ښه راته ګوره ســــتا په عشق کې زما
ګریوان شو څـــیرې تار په تار لېونۍ

اوس خومې سیوری هم په کا نه ولي
بـــــیا به مې ژاړي پر مزار لیونۍ

کـه کا مـــه وال ته دې د مینې ووې
کړي به ژوندون درځینې ځار لېونۍ

۱۳۶۹/ کابل

# شملې

یا به ورپوو ه جنډي په دې سرونو
یا به پورته کړو شملې په دې سرونو

بې ننګۍ باندې به ټیټ نه شي اغیار ته
شي که ډکې ادیرې په دې سرونو

وخته پوه شه زه هماغه لیونی یم
تیرې شوې حادثې په دې سرونو

چې د قاام مینه کې مړه شي چاویمړه دي
کامه وال لیکي کیسې په دې سرونو

۱۳۶۹/کابل

د زړه للمه — غلام محمد کامه وال

# غزل

په کوم لوري چې د ښکلو نـــظــر وشـــي
سلامي ورته مغل او پـــښـــتـانـــه شي

مار لړم خوړلی ښه وي په دم کـــيــــږي
چې د ناز سترګو خوړلی روغ به نه شـــي

که هر څو وايې نا صحه نـــه يـــې منـــمه
چې خبره د پښـــتـــو پـــه کې ونه شي

څه کانې را بـــاندې مستو سترګو وکړې
چې مې ځـای نه په صحرا نه په کاله شي

کامـــــــه وال کړئ په غزل د حسن تول
هغه ښکلي چې درانه وي بيا درانه شي

۱۳۷۰/ لغمان

د زړه للمه　　　　　　　　　　غلام محمد کامه وال

# تورې کوڅې

تورې کوڅې چې تار په تار جوړیږې

کوم لیــــونې غریب له دار جوړیږې

نن چې دا ښکلې ټول مغروره ګرځې

د کــــــــوم مین د قتل لار جوړیږې

د غـــیـــر غماز ځای په کې نه وینمه

زمــــــونږ خبری وار په وار جوړیږې

څـــــه بــــــه پرواددوزخونوکوم

ستا چې وربل په هر سهار جوړیږې

چـــا د کـــــمڅو ټالونه ګرم کړه بیا

مونږ بد نصـــیبو ته ګوزار جوړیږې

مـــــــدام دا ښکلې کامه وال لپاره

کـــلـــه تر بور، کله بادر جوړیږې

غلام محمد کامه وال                                                د زړه للمه

# د منګي او ستار کلي

په لمبو وسول د دیرو او د چنار کـــلــــــي
ډیر مې یاد یږي د منګي او د ستــــار کـــلـي
هغه د لرې کندوالې چې کــومې ښکاري درته
دلـــــــته زمورږ وو دنــیکونو او د پلار کلي
خدای شـــه خبر تاته بـــه یادوي او که نه جانانه
چې وو جـــــورږ شــوي ځای پر دغه لار کلي
څه یې د قاف څه د پنجاب د جادوګرو په لاس
شـــــومــــې تــــا لا د یارنې او دریبار کلي
قسم په خدای چاپرې زړګی قدرې ونه سوزاوه
څه مې پخپله څه پــــــردومي کړه بمبار کلي
چې په ورتلل په اتڼونو د غــــلـــیــم مخې ته
څه د لوګر، څه د پکتیا او ننګرهـــار کـــلي
چې ملالۍ به په کې چیغه د غزا پورتـــه کړه
په جوش به راغلل د کابل او کندهار کـــلـــي
ښه راته یاد دي کامه وال ورته ژړل په چـــیغو
په هغه ورځ چې شوه او ښانو پاندې بارکـلي
۱۳۷۱ / ۱ خوند کلی ، کامه

غلام محمد کامه وال

د زړه للمه

# د توري او قلم خاوند خوشال خان بابا ته

يې له عشقه چې ژوندون شي خوښ مې نــه دی
زلفو شپه که سباوون شي خوښ مـــــې نـه دی

چې قدم يې د خوشال پر قـــــدم نــــــــه وي
که څوک سل ځله پښتون شي خوښ مې نه دی

عمرازي چې د خوارانو پـــــکـــــې نـه وي
دغه سرکه اپلاتون شي خوښ مـــې نـه دی

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

اول چـــي غــوځ د رقيب سرنه کړمه

ښـکلي پګړۍ تا به  یر سر نه کړمه

قســم په خداي چي د کابل بدل کي

دا سي د دوي پنجاب کنډر نه کړمه

زمـــــا يـــې ولاړه ګودر په وينو

لمبه لمبـــــه يې چي ګودر نه کړمه

مــــرګـيه ځه تر هغي لري ګرځه

تــــر څو چي يو دالر اوبرنه کړمه

که رانه ويې غوا ړمه دژوند په بدل

يــو موټي خاوره به دي ورنه کړمه

۱۳۷۳/ کابل

غلام محمد کامه وال　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　د زړه للمه

# غزل

چې په خندا شـــې نو بیا غم نه ګوري
زمونږ ریښـــې ګرېوان صنم نه ګوري

زړګیه بـــــیا څه قصور شوی درنه
په کتو ګـــوري خو لږ سم نه ګوري

یـــود پـــېمخو دا عات وي مدام
خــــپلې نادودې او ستم نه ګوري

کامه وال ستا په تماشه کې ورک شو
تاله چې ګوري نور عالم نه ګوري

۱۳۷۴

غلام محمد کامه وال　　　　　　　　د زړه للمه

# د ليونو لمنيـ

راتــــــه چي نيسي د پردو لمني
کـــــــړي به بې پته د پښتو لمني

چا چي زمونږ ګريوان ته لاس راوړي
ژربـــــــه شي څيري د هغي لمني

ريښي ريـــښي به وي تر څو يارانو
دوران مــــالـــــت د ليونو لمني

لاړلي خر څي پـــــه اغيارو شولي
د ملا لي او د نـــــازولـــي لمني

نور له ماشي نه دي کړه ګوته لري
د کـــي شوي اوس د اديرو لمني

شـــي به رسوا د کامه وال په قلم
چـــاچي نيولي دي د غلو لمني

۱۳۷۴/کابل

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# پښتو

پښتانه شوه اوس دټوکومسخر
چې محتاج شوه دګیدړاودپیشو

چې له شرمه یې چاته جګ کتلای نه شول
نن سپږي د زمریانو پراوږو

ځیني وایې چې پښتوڅه شوه پښتو
پښتووختـه خرڅه شوې په پیسو

دخوشال په مېنه نه شته هغه خلک
چې فلک سره ډغرې کړې هغو

لاس ترلې مودمرګ کندې ته بیایې
لږ په خود شئ ببرسرو لیونو

لـــــــــه پردونه ګيله مه کړه کامه وال

مـــــلـــــګرتيــــامو رهبران کوي دغلو

۱۳۷۴/جلا آباد

د زړه للمه غلام محمد کامه وا

# ژوندیو اډیره

نن په چا وژاړم خدایه
نن په چا سترګې خوږې کړم
چاته لاړ شم
چاته کینم
چاته زړه وایه نژدې کړم
چاته ووایم حالونه
چاته کړمه ګریوان څیرې
چاته خاورې پر سر باد کړم
هره خوا ستم ستم دي
هره ورځ پر موږه غم دی
چا راوستی ظالم زور دی
چې پربوتی مو پر کور دی
یوه بده شان اروا ده
ویروونکې خپسۍ ده
چې مې ستونې باندې نا شته
اوزه غږ وایستلی نه شم
خو په زړه کې ښه بیدار یم
ځړولی یې پردار یم
خوله لاسه مې هیڅ نه شي
چې خپل ځان ځنې ازاد کړم

چاته کړمه ګریوان څیرې
چاته خاورې پر سر باد کړم
لویه خدایه اوی وطن مې
دژوندیو ادیره ده
د پوښتنې ژبه مړه ده

د زړه للمه                    غلام محمد کامه وال

# غزل

ستر ګې په ستر ګې زړه په زړه پوهېږي
پـــــــه اشارو سره با نه پو هېږ ي

اشـــــــنا خبره لږ پرده کي کوه
ملک د پـــــښتو دی پښتا نه پوهېږي
چې مخامـــخ شې نو د شونډو پر سر
ګونګ خـــو د ګونګ په ژبه پوهېږي
دی د تســپو په زنځير ذکر دې کړي
زاهد پـــه مينه باندې څه پوهېږي
تر بـــنــو لاندي ورته ووايه تش
دا کـــــامه وال په رما زه پوهېږي

۱۳۷۵

غلام محمد کامه وال                د زړه للمه

# غزل

نوم د پښتو مې په تندي وليکئ
يو څو رازونه د زړګي وليکئ

چې ايره شوي د لمبو په څوکو
هغه د مينې سپېلني وليکئ

بانه دې پورته ښه دې ښکته يې نه کړې
د يار کاته هم پښتني وليکئ

دزړه د فتر مي دی خور کړی ورته
څه ننني، څه پروني وليکئ

چې کامه وال يې لېونی کړو راته
دا روغ له مخې لېوني وليکئ

۱۳۷۵/کابل

# په حساب سره خبرې

یم بـــــــه لیونی خو په حساب سره خبرې کړم
ځـــکـــــه د تاریخ له هر یو باب سره خبرې کړم

ها چې مې بې دین او په ایمان پسې راخیستې ده
ځـــمـــــه له ممبر او له محراب سره خبرې کړم

و مې لید یـــار ، زهد ، قسم دی چې په سترګو نن
نن بـــــه لـــــه زاهد خانه خراب سره خبرې کړم

لا یې پـــــــــرا اوړه چې د پرد یو پرون اېښی و
د غـــونقـــــاب پوشو له نقاب سره خبرې کړم

وطـــــنه چا په لرو ، چا په بروباندې خرڅ کړلې
احـــمد یم له مسکو او له پنجاب سره خبرې کړم

تـــــاریـــــخ د هوتکیانو بیا لیکمه شناپورکي
محمود یم له کرمان او له کولاب سره خبرې کړم
۱۳۷۷/ جلال آباد

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# نیمګړی غزل

محفل کې د رنـــدانو وار په وار کېږي تپوس
زمـــوږه د خـــوارانو خو په دار کېږي تپوس

په خدا پېږو نه پوهیږم چې په څه ګناه مې وژني
زمـــا د قـــتـــلیدو په لویه لار کېږي تپوس

قـــسم چې چاته نوم د یارانې اخیستی نه شو
زمـــوږ خـــو لا څه چې له رببار کېږي تپوس

جلال اباد ۱۳۷۸

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# څلوریزه

څـــــو بـــه دي د ظلم دنیا ګورمه
ځمه بــــیا فرعون ته موسي ګورمه

وژني مي پخپله په خپل ځان باندي
زه لاورتــــــــه بیا په خندا ګورمه

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

چـــې سـلا يې دې پېچه واړوله
بـــيـــا دې پـــه موږ توبه واړوله

چې دې په ذکر کې غلط شومه زه
ژر مـــې د ســـهـوې سجده واړوله

زاهده نور مـــې ستاله لاسه ګوره
دا خـــپـلـــه لاره کـــوڅه واړوله

نن کامه وال د خپل قلم په څوکه
د زوز ورو کـــعـــبـــه واړولـــه

غلام محمد کامه وال                د زړه للمه

# یاران

پــــه غـــتــــو غـــتـوراته ویني یاران

ولي داڅومره شوه بي مینـــــــي یاران

څومره که وګرځیدم ښــــکـــتـــه پورته

پیدامې نه کړل څورښتــــــــیني یاران

چې په ژوندون راتــــــــه ونه رسیدل

تش یادوي مي اوس پــــه مړینې یاران

له وېرې غرایـــــستـــــلی نشم خلکه

پښي اوس ږدي زمـــــاپرستوني یاران

دنـــــورو دردتــــــه به شي څنګه دوا

ګرځي په خپل منځ کي خواشیني یاران

لــــږځه انصاف خوورته ورکړې خدایه

پـــــه کـــامه وال کوي ناشوني یاران

ماسکو ۱۹۹۶

# غزل

خیر که زما په کې تاوان دی اشنا
ډیر دې خاطر را باندې ګران دی اشنا

څه ګوزاره راسره وکړه ګله
اوس خو دیدن یو څه ارزان دی اشنا

په موړه څه قحطي رانښکته کړي بیا
پر نورو څو مره مهربان دی اشنا

کله غوسه کله خوشاله وي دا
کله رټلی کله باران دي اشنا

بس دی همدومره ستم بس دی صنم
دا کامه وال هم مسلمان دي اشنا

ماسکو ۱۹۹۶

# غزل

چې د پــیمخو مې رخسار ولیده
زړګـــیه بیا مې درته کار ولیده
څـــه دازل څه دنصیب له لاسه
ژوند مې پرخپلو اوږو بار ولیده
مــا یې په خیال کې تصور کولو
نـــن مې هما غسې رفتار ولیده
شې به حرام پرې د د وزخ اورونه
چــا کـــه دهغه زلفو تار ولیده
شـــه مـــبارک مو لیونو یارانو
نن مې په تا سې کې سالار ولیده

۱۹۹۶/ماسکو

# د وطن په سر

ټول مې چې یاران دي د کفن په سر
ګوري مې زخمونه د بدن په سر

پام کوي چې ما پسې ونه ژاړي
زه یم په دار شوی د وطن په سر
مه کوی چې سر باندې مې ښي لګي
توري خو وریږي د تورزن په سر
ګورګین او که مغل ده ګرمه کړې
لوبه د وحشت د قطغن په سر
چېرته یې بورا ګانو تاسو چېرته یې
ګرځي ګونګوټان مو د چمن په سر

اور دې لګاوه د خپله لاسه پرې
سوزه کامه واله د خوږلن په سر
۱۹۹۶ ماسکو

غلام محمد کامه وال

د زړه للمه

# غزل

تـــــش ورتـــه دمينې يونظرورمه
عشقــه دا ګناه به دې په سر ورمه

تـــه پــکې خيرات دحسن واچوه
دادمـــلـنګۍ کچکول به درورمه

مــاتــه له نکير مکير څه ويره ده
زه چـــه په ګولو سوری ټټر ورمه

خدايـــږو نو ره مينه دچا نه منې
تــــش پری څو نازونه ددلبر وړه

وير پکی نغمې دملنګ جان کوې
کـــله چه رباب ته ګوتی وروړمه

دی ليونې سرکې بل څه نه ورمه
ســتـا دليونتوب پکې اثر ورمه

**۱۹۹۸/ ماسکو**

# د عشق جذبه

چي د عشق جذبه يې نه وي په رګوکي
هغه واړه حساب شوي دي په مړوکي

د يـــــــورپ نازک بدنه به زه څه کړم
ګرځيداي د خپل وطن په غرو رغوکي

مـــــاته واړه لکه ګوتي د يو لاس دي
کـــــلــه فرق شته لروبرو پښتنو کي

راته ښـــــکاري د جانان حسن نظر دي
کامه وال يې چي شميرلي په سړوکي

ماسکو/۱۹۹۸

غلام محمد کامه وال　　　　د زړه للمه

## د پښتو ژبې د فلسفي شاعر غني خان (غني ) د يوې غزلې په الهام

داعاشـــــورا که محرم تېره شوه
د اختر شپـــه زموږ په غم تېره شوه

د کـــــر بـــلا قاتل خجل شو ورته
چې کـــــو مه لوبه ه دې چم تېره شوه

چا د کـــــو څو خاورو کې تېره کړله
په چـــــا محل کې په حرم تېره شوه

تله چـــــې کنعان ته د يوسف قافله
پـــــه ســـخته لاره د عجم تېره شوه

شيخ د جومات محراب کې تېره کړله
شـــــپه د ساقي په زير او بم تېره شوه

د خـــــوب ليده وو کامه واله خدا يږو
ښـــکـــلې ځواني په يوه دم تېره شوه

ماسکو ۱۹۹۸ د لوی اختر شپه

غلام محمد کامه وال

د زړه للمه

# هغه چاته چې په ژوند نه هیرېږي

که خــر ګند یې په دنیا متې قدم شي
د دنـــیـــا خلک به واړه ورته تم شي

چـــې به نه لیکي طفت دا ستا دحسن
پـــه لا سونو کې دې مات زما قلم شي

نـــــور به غوره بله لا ره چېر ته نه کړي
کامه وال که ستا د کور پـه لاره سم شي

فریازیوا ، ماسکو ، ۱۹۹۹

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

لکه مـــې سیـــوری په قدم روان دی
داشـــنا غم راســـره سـ+ـــم روان دی

یارانو پرینښو د م پـــه نیـــمه لار کې
راسره مـــل دا خـــپـل قـلم روان دی
کـــلـــونـــه وشول چې زمـــوږ کلي کې
درقـــیـــبـانـو دا ســـــتم روان دی
دخو شحالۍ شیبو تـــری کډه کړې
زور دوحشت په زیـــر او بم روان دی

پـــکـــې اوسیـــږې دادچا یـــادونه
چـــې مې له سترګو ورته نم روان دی.

د اوکراین او رومانیا پر پوله ۱۹۹۹

غلام محمد کامه وال — د زړه للمه

# ګودر او مورچل

مــــسا پر یم ما کابل وطن ته یو سئ
جــنازه مې ګوری خپل وطن ته یوسئ

اوچت غرونه یې له ورایه خړ ښکارېږي
هسې نه چېرې مې بل وطن ته یوسئ

په دې خلـــکو مې هیڅ مینه ماته نه شوه
ما شملو او د چــار ګل وطن ته یوسئ

چې تر اوسه یې مغل انګریز کیسې کړې
ما خوشال او د ایــمل وطن ته یوسئ

دا پېمخي دې پــــر تاسې مبارک وي
ما سپېثلي او شـــهل وطن ته هوسئ

چې پرهر مې د زړګـي پکې ټکور شي
مـــا ګودر او د مور چل وطن ته يوسئ

خـلکه سترګې به مې هلته سره ورشي
مـا زخمي زخمي ګوګل وطن ته يوسئ

دا وصيت مې ښه د زړه په غوږو واورئ
کـامه وال به د غزل وطن ته يوسئ

لندن ۲۰۰۰

# د لوی ځوان نذر

نن مې په دربار کې د لوی ځوان نذز منلی دی
خدایږو ما په سر نن د جانان نذر منلی دی
یارانو مخکې ګورئ چې تا لار درځنې نه شي
رقیب د یار په څنګو د تالان نذر منلی دی
ډالۍ به یې کړم غازیانو ته د خدای په رضا خلکه
ما د خپل وطن په سرپیزوان نذر منلی دی
منزل ته قافله به د یوسف ځنګه نه رسي
ښکلې زلیخا یې په کاروان نذر منلی دی
بیا به مې شملې د لراو بر په سرو هسکې شي
ملا لو په جرګه د میرویس خان نذر منلی دی
ځئ د دوی په ویر د خوشالۍ جامونه پورته کړو
دوی زموږ په منځ کې د خفګان نذر منلی دی
بیا ببر سرونه رانښکاره شاړو کو څو کې شول
چا د لیو نیو په ګریوان نذر منلی دی
پورته کړئ لاسونه، شئ الله ته په زارۍ زارۍ
موږ د بیټ نیکه په د ستر خوان نذر منلی دی
ټول مې ننداري ته د نړۍ خلک راووځئ
قسم چې کامه وال په دې ارمان نذر منلی دی
لندن، ۱۱/۱۱/۲۰۰۰

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# د لیونتوب اثر

په تندي خال چې د دلبر ښکاره شي
لکه بلال چې په ممبر ښکاره شیبه
څومره ښایسته وي خدایږو هغه شیبه
د پلو لاندې چې نظر ښکاره شي
ستا د ستم ماڼۍ به ولړزوي
د لیونتوب که مې اثر ښکاره شي
وطنه ستا مینه به وګټمه
چې سرې جنډې مې پر سپین غر ښکاره شي
بردامو تر آباسینه پوري
افغان په بیا لکه د لمر ښکاره شي
شي به راټول یې ننداري ته خلک
د تومتو که مې د فتر ښکاره شي
د بڼو ښې پکې پاتې دي لا
که مې داغونه د ځیګر ښکاره شي
کامه وال لوی نذر منلی خدایږو
آپښتنې که په ګودر ښکاره شي
پاریس ۲۰۰۰

# غزل

قبرمې نشته زمـــــاګور نشته دې
زه مسافر یم زمــــــا کور نشته دې

زړګیه څه چې بـــــی ګودره ګډ شو
زموږه لار ، زمــــــوږه لور نشته دې

له اصــفــهـــانه تر ډهلې پوری به
چه چلیده اوس هــغه زور نشته دې

دا تــــــــومتونه درقیب دې قسم
زما پــــــر سپینه لمن تور نشته دې

چه سپیــلنې غوندی لوګې شم ورته
ستا په کوڅه کې هغه شور نشته دی

چـــــــه رغیده پری پرهرونه دزړه
اوس هغه سیال هغه ټکور نشته دې

پـــه روغ زړګې شې کامه واله خنذا
نور مې په زړه کې هغه زور نشته دې

بیلجیم ۲۰۰۰

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# څلوريزه

د لــــنـــــــدن دا محلونه كه بنګلي دي

مـــــاتــه غوره د وطن شاړي كوڅي دي

سپيره كاڼي د سپين غر به پري ورنه كړم

لــــــــوړ برجونه د جرمن يا فرانسي دي

۲۰۰۰/لندن

د زړه للمه                                        غلام محمد كامه وال

# الزام

تور خال دې په تندي کې داسلام نیولی دی
دا زه یې مــقتدي ، دی مې امام نیولی دی
طــا لــــبـــــه څنګه وره قرأت په بیړه وایه
څو مــــورږ چیرته دمینې اهتمام نیولې دی
پښتون یمه محشرکی به هم هڅکه غاړه څم
بیرغ مې په لا سو کې دخپل قام نیولی دی
تــنده د مود و به مې قسم دې نن شې ماته
جــــانــان په نریو ګوتو راته جام نیولی دی
یارانـــو کامه وال څنې خبر شوئ او که نه
نن بیـــا یې دکوم ښکلی په الزم نیولی دی

۲۰۰۱/لندن

غلام محمد کامه وال                                        د زړه للمه

# غزل

پسې راخیستی پان تو زمانې د

شوله دره ګو بی لاړه مو بیړې

خدایږو وو نه پکې مو نصیب قسمت

شوله مقرره خدایه له ته موږ

ورته لیږلې مې ننواتو په

شوله اثره بی می جرګه ښکارې

وی نه وروړی هم شونډې لا خو ما

شوله ژرمروره ساده هغه

ناوکی دښایست دمینې زما

شوله دره درپه کې څو کو پردو

لندن/۲۰۰۱

غلام محمد کامه وال　　　　　　　　د زړه للمه

# غزل

نن مې لږ پرېږده چه ما ښام ويـــده شم
چې په غمونو کې دقام ويــــــــده شم

جانانه هغه ورځ به کــــــلــــــه راشي
چې ستا دسرو شونډو په جام ويده شم

قـــسم په خدای شپه دشو قدر به وي
چـــــې ستا دځنو په تور دام ويده شم

چـــــې دمالت خلک راټول وي پرما
ستا دکاله مـــخکښې بد نام ويده شم

رســـــې مـــنــــزل ته قافله به زما
که دحا لاتو پـــــــــه انجام ويده شم

پریږده چې وئې څکـــــم په لپو لپو

چې موده پس لکه خــــیام ویده شم

زه کامه وال به لـــــــه اغیارو کله

پر دنیا هم ګنې ارام ویــــــده شم

۲۰۰۱/لندن

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

سلوسرونو نه یـــــو سرغواړمه

ځم په شملو کې شملـه ور غواړمه

چې پرهرونو ته ټکــــــور شي زما

هسې کاته هســــــــې نظرغواړمه

چې اقتدا مې دټـــــول قام وې پسې

هسې مـــــلا هـــسې ممبر غواړمه

چې پرې تیــــــارې دهجران وشیرمه

داسې سپیــدې داسې سحر غواړمه

دا بیخودې مـــې لړ په خود شي پکې

یو لـــیـــونـــې غوندی اثر غواړمه

چې مې ټوټې زړګی کوشیر شي په کې

داســــې بــرات داسې اختر غواړمه

۲۰۰۱/لندن

غلام محمد کامه وال　　　　　　د زړه للمه

# غزل

چې سپرلۍ مې له ګلشنه کډې بار کړې

شــنو طو طیانو له چمنه کډی بار کړې

لویـه خدایه چې بې ستره چیرته نه شې

مــــلا لـــیــــو له وطنه کډ ې بارکړه

سپیرو څنــــو دجانان ته کتی نه شم

روح مې لاړو لــــه بدنه کډې بار کړې

څه دقاف څه دپـــــنجاب له جادو ګرو

ښا پیریو له خـــتـــنـه کډې بار کړې

که دیدن یې دوطن چــیرته نصیب شې

کامه وال به له لنـــــدنه کډه بار کړې

۲۰۰۱/لندن

د زړه للمه　　　　غلام محمد کامه وال

# غزل

زمـــا خـــو پرې زړګیه ګومانه نه راځي
کـــړې یـــې وعـده خو جانان نه راځي
یو ځـــلـــې یې د ځان په شانې ووینم
بـــس نـــور راته زړګیه ارمان نه راځي
ډیـــرې مـــې دا لارې ورتـــه ونیوې
چې تللی هـغـه خیرې ګریوان نه راځي
خدا بړو د قیامت ورځي پري تیرې شوې
ولـــي پـــردې ځمکه اسمان نه راځي
اخـــر پسې په غبر ګو ستر ګو ړوند شول
مـــوده وشوه هیڅ خبر له کنعان نه راځي
زمـــوږ د نـــظـرونـــو للمي وسولي
دا ستـــا درحـــمـــتونو باران نه راځي
لاړل مـــســـا پـــر پـــردو ملکو کي شول
ښـــکاري نـــور وطن ته یاران نه راځي
مـــخ دې رانـــه واړوه بـــیـــلتونه بس
نـــو حـــوصـــلـــه د هـجران نه راځي

لندن ۲۰۰۱

د زړه للمه — غلام محمد کامه وال

# غزل

لوټ دی کړم تالا دې کړم په سترګو کې

ورک ومـــه پیدادې کړم په سترګو کې

ټولې سپـــارې مې دعشق خلاصې کړې

خدایږو چـــې ملا دی کړم په سترګو کې

تـــــه هــم په دی پوه او زه هم پوه شومه

پوه شـوم چې خطا دی کړم په سترګو کې

شــــرم مـــــې دې ټول په غاړه واخیسته

خوښ دی کړم سلا دې کړم په سترګو کې

قـــــدر که عـــــــزت دی خو همدغه دی

شاه دې کړم ګـدا دی کړم په سترګو کې

۲۰۰۱/لندن

د زړه للمه                    غلام محمد کامه وال

# غزل

له نورو خلکو یې راتــه ښه ایښی دی
چـامې چې نوم د پــښتانه ایښي دی

د ر سره څومره ښکلـی ښکاري اشنا
نــن دې دا خال زما پــه ژړه ایښی دی

رمــــه دې تــــولـــه خپله وداړله
خو نوم پر ځان دې د شپانه ایښی دی

ان له ماښامه ساقــــي ترږي ناست یو
قسم که څاڅکې مو پر خوله ایښي دی

یو د اشنا د شـــــوخ نظر له لاسه
بل یې پرې داغ د بیـــلتانه ایښی دی

نن یې پرې دمـــــــه د مودو وختــه
کامه وال سر ستا پــه ورانه ایښی دی

۲۰۰۱ لندن

د زړه للمه — غلام محمد کامه وال

# د تورې سرې

د برید سرونه پکې پاتې نه شول
له هر خوا کیږي مې تیری پر وطن

چې بدې سترګې د غلیم و باسي
نشته د تورې مې سرې پر وطن

ارمان راځي د اکبر خان د توري
نن سبا ګرځي مې پردي پر وطن

چې ږ مالت لارې پرې ښې ښکاریدې
نشته پګړۍ نشته پټکې پر وطن

د تاریخ پاڼې پرې نازیږي مدام
چا چې ورکړې قرباني پر وطن

سردې ترې ځار کړه کامه واله آشنا
لږه دې جوړه که سیالي پر وطن

لندن ۲۰۰۱

غلام محمد کامه وال　　　　د زړه للمه

# د وطن غمونه خوري

شپه او ورځـي مې بدن غمونه خوري
څـــه د يار، څه د وطن غمونه خوري

راتـــه وګــوره جانان بيا ونه وايې
زړه مې ګوره چې من من غمونه خوري

خدايــږو لاړو په غمونو ا موخته شو
پـــه کـا سو او په لګن غمونه خوري

ښه پوهيږم په غمخور زړګي پو هيږم
يـــوه ورځ به د ډيورن غمونه خوري

دې وړو وړو غـــمـــــو سره به ګالم
دم ګـــړي د قــطــغن غمونه خوري

تـــه به وايې چي بيغمه به زه ګرځم
کامـه وال دې په لندن غمونه خوري

لندن ۲۰۰۱

د زړه للمه — غلام محمد کامه وال

# غزل

نه مو بـــــرات نه نه مو اختر وکتو

نـــــه مـــو دچا موسکا نظر وکتو

وینې تری څا څې دچا یادکی مدام

کـــه می سینه کې چا ځیګر وکتو

پـــــه انتظار یې لا تر اوسه پورې

نـــــه مې دهغې شپې سحر وکتو

دیــــارانـــــې جنازه پورته شوله

چه مې دســـــرو وینو ګودر وکتو

داخـــــــــرت سزا به څه راکوې

موره پـــــه دی دنیا محشر وکتو

لندن ۱۶/۳/۲۰۰۱

غلام محمد کامه وال　　　　　　د زړه للمه

# څلوریزه

ریښي ګرایـون د ملنګۍ ماښام بیا راغلي
زماد سـتـړي زندګۍ ماښامه بیا راغلې

د خــو شـالۍ ویش دې پر نورو ګډ که
ماله دې راوړلې سلګۍ ماښامه بیا راغلې

لندن ۲۰۰۱

# څلور یزه

عـشـقـه ستا د مینې ظهور لیدلی دی
دارتـه پـه خـندا مې منصور لیدلی دی

اوس بـه چیـرته رانه پټ شي فرعونیانو
خوب کې مې موسی په کوه طور لیدلی دی

لندن ۲۰۰۲

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

مـــوږه خـــوتـل درته د عا کړې دي
جـــانـــانـــه چا درته ښېرا کړي دې

تمامه شپه مي ستر ګي پټې نه شوي
ســتــا اند ېښنې مې تر سبا کړې دي

راتـــه څـر ګند د ټولو نيت شو پکي
هـــم دې امـــي دې مـــلا کړي دې

تـــــه بـــــه خبرېي او که نه جانان
دوي قـــسمـــونـــه درته بيا کړې دي

له غير غماز نه کيله مه کړه دې کي
يا دې رهبر، يادې پېشوا کړي دي.

۲۰۰۳ لندن

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# امیر حمزه بابا د ژوند اتیایمې کالیزې ته

په پېښور هم په کابل دی حمـــــزه

په لراوبر کې روڼ مشعل دی حمـزه

ټول شاعران یې افتخار کړي په نوم

پـــلار د پښتو نوي غزل دی حمزه

هـــــــرویناکې یې خواږه پراته دي

د پـــښـــتـــودلارې مل دی حمزه

موږته یې ځـــوان کړلوغزل دپښتو

خپله بابا دهـــــــرمحفل دي حمزه

زه دحمزه پـــــه لاره ځـــم ملګرو

چې شاعرانوکې اول دی حمــــزه

چې پښتانه غونډکړي یوه مرکزته

دغسي کړی یوتکل دی حمـــــزه

کابل

غلام محمد کامه وال — د زړه للمه

# دګودر جنازه

هــــر يـــو ســـحر، هر مازيګر جنازه
کـــلـــه وي لـــــر، کله وي بر جنازه

کلي کــــو ځـــــې خو هله سرو خوړو
چـــې شــــولـه پورته دګودر جنازه

رنګ دنکريـــزو ترې هېر شوي خدايږو
پـــيـغـلـــــي مې زاړي داختر جنازه

نه له ماتم نه پرې چا اوښکي تويې کړي
وابــه خـــلــــي ځوک د مساپر جنازه

چې مې د ننګ شمله پري ښه ښکاريده
چـــا مـــــي اخيستې ددي سر جنازه

زمــــا د مـــيـــنې ستر مات شوپکې
وړي پـــــه تـــــور خم مې د نظر جنازه

ښـــو ونځي شاړ، روغتون موو تړل شو
ژاړم مـــعــلـــــم اود ډاکـــټر جنازه

ځـــــه د کـــــافر ځه د مسلم له لاسه
ملا مـــــې اخـــلـــې د مهبر جنازه

چي به ترې چـــيغـــه د غزا جګېده
شمشاد مي ژاړي د سپـين غر جنازه

چـــــي قـــافله يـــي خپله ودا ړله
ولـــــئ پـــه تـــيرو د رهبر جنازه

۲۰۰/۱۰/۱۰ لندن

دسید راحت زاخلي صیب دیو غزل په اقتفا مشاعرې ته

ځان نور منزل ته رسول غواړم
ددې حالاتو بدلول غواړم

برخلیکه نن به دې پخپله لیکم
تندیه نوردې ماتول غواړم

د یو روښانه سباوون په هیله
داتورې شپې سبا کول غواړم

چې په موسکا یې ښایسته کیږي جهان
د هغو شونډو ښکلول غواړم

چې تل له میني محبت نه ډک وي
په هغه زړه کې اړول غواړم

چې روغ له مخې لېوني شي ورته
داسې غزل نن اورول غواړم

راته چې اوسي کامه واله زړه کې
نن د هغو سترګو لیدل غواړم

کابل

د زړه للمه

غلام محمد کامه وال

# غزل

یـــارانـــو نـــن یې ښنبم په لپو لپو
پرې ږده چې غم پرې یوي خوا ته کړمه

چـــې مې ساتلي وه پـــه زړه کې اشنا
نـــن بـــه دا تـــوله کیـــسه تا ته کړمه

شـــیـــخه د لاری مې اغـــزی مه کیږه
دغـــه خـــبـــره هـــم مـــلا ته کړمه

ډیر ګنهګار یمه خـــودا هـــم کـــوم
بیا اراده یوي ګـــنـــاه تـــه کـــړمه

کـــه پرې منکر شوې کامه واله اشنا
ښـــکاره به هر څه دې دنیا ته کړمه

غلام محمد کامه وال                                        د زړه للمه

# غزل

څـــه د ســـاقـي څه د صنم ورسيــد
موږ له خو تش په زړګي غـــم ورسيد

څوک يي ارمان د تــش ديــدن کوينه
چـــالــه د زلــفو پــيـــچ وخم ورسيد

نـــن د پــيـمخـــو انـعامونو کي بيا
مـــوږ لـــــه ديار جبر و ستم ورسيد

زمـــــونـــږ پر هر پر زړګي پاتې شو
دوی له د سرو شونډو مرهم ورسيد

د دې دنـــيـــا پـــه قسمتونو کې نن
د کا مـــه وال بـــــر خـه قلم ورسيد

د زړه للمه　　　　　　غلام محمد کامه وال

# زړګي په وطن

تر خاورو لانــدې شول زلمي پر وطن
د جونو ســپـین شولو پیکي پر وطن

لوبــــي مـــې کیږي د زړګي پر وطن
سیلۍ چـــلــیــږي د مرګي پر وطن

پکې مې ځوانـــي هیلي قتلي شولي
د ژونــــد راغـــلې ده قحطي پروطن

د ظـــالــمــانو پر ی زړه نه سوزیږي
رحـــم تـــه وکـــړي الهي پر وطن

چي به هو جري په ستار ګرمئ وي تل
بــیــا هـغـه شپي کله راځي په وطن

غلام محمد کامه وال

د زړه للمه

# فتوی

په ما خو دي فتوه د کفرو کړه
خو پخپله دې سجده د کفرو کړه

ما لا سم ورته یو ځل کتلي نه وو
زاهد انو فیصله د کفرو کړه

پرونی ستم یی خدا یږو رانه هیر کړ
کامه وال یې چط کیسه د کفرو کړه

ساهیوال پنجاب

# يو مخ

چــــي د ښکلو تورو ستر ګوته مو پام شي
لـــــمونځ قضا د مازيګر اود ما ښام شي

دا تور خال دې دورو ځو محراب ته وخوت
يــــا کــعــبــه کې چې بلال د چا امام شي

کــــامــه وال تــل عبادت د يوه مخ کړي
نــــور کــاته دې د بل مخ ورته حرام شي

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

ګوتو ته مـي راغلي د محفل واکي
اخــلـــمــه له حال د مستقبل واکي

ډير به پـــر خوله ګوته خپله ونيسي
ومی نـــيـــوي لاس کي د غزل واکي
مـــيـــر د قـــافلی باندي شکمن يمه
ټـيـنـــګي کړئ يارانو د منزل واکي
ښکاري چـــي لاسونه مو تري وخاته
لاړي خـــدا يـــږو لاړي د کابل واکي

بـــيـا به کامه واله چيرته ټينګي شي
يو ځل که خطا شوي د ګوکل واکي

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# دقام غم

زخـمـي زړه چي پري رغيږي دم هغه دي
چـــي مـدام دي وې ملګرى غم هغه دي

ډرير سترګي به د اوښکو په نم سري وي
چې دقام په غم کي سري شي نم هغه دى

د دنـيـا په ساز و باز باندي که پوه وي
چـــي لــه عشقه نا خبروي کم هغه دى

اکوړه حتک، پښتونخوا
دوشال بابا مزار

# وصیت

زما خــوږو یارانو دا وصیت درته کومه
راته ښي بـا جه خاني په ځنګدن وغږوئ

هیر مو نـه شي چي جانان مي کفن ښیري
دولـــو نـه اونغاري مي په کفن وغږوئ

چي په مرګ د کامه وال ښکلي خبر شي
داخـــبر دجـنازی په ټول وطن وغږوئ

د زړه للمه غلام محمد کامه وال

# غزل

زه چې ستا له مـيـنـي سره مل شومه
ګل دی په کمڅو کــيـد وربل شومه

ای د خــط وخـــال شـاعره وګوره
زه هم په پښتو کـي يو غزل شول مه

زه يــې هسي تور کي ورته ننبه کړم
زلــفو کي راګيره ول په ول شول مه

ځــلــه مــي له ستر ګو نه پټېږي نن
جـــوړدي رقـــيـبانو ته اجل شومه

حال نه وايي خلکه کامه وال ته نن
دومــره بي اتباره په څه چل شومه

پروان .ګل غوندۍ

غلام محمد کامه وال د زړه للمه

# غزل

ربـــبـــار چې وکړی د صنم خبرې
په دې کې نشته زيات او کم خبرې

زه چې دا ستا سترګو ته و ګورمه
رانـــه شـــې هـبرې هغه دم خبرې
چې راته ودې کــړې په مينه مينه
چې سرو غـــوټيو لره شاه ورکوي
ګــلــونـــه وکړی د شبنم خبرې
راځـــه چې ښه سره تر عاړه و ځو
هسی هــم کيږي چم په چم خبرې
مدام خــبر دی د حالاتـو پـه نبض
کـــوی رباب د زير او بــم خبرې

چـــې ويده زړه نه په د زرا راولي
د کامه وال د خولې لـيکم خبرې

غلام محمد کامه وال

د زړه للمه

# غزل

دی ایښی صـــــنـــــم راته زړګې په مینې ډیرې له
دی ایـــښـــی صنم راته تندې په مې داغ دستم
قسم ښکارې راسره ښایسته او دی ښایسته ځومره
دی ایـښی صنم راته دلـیـونـې نـوم دا خـلـکـه
یږم یاد ښه پری نوکې شقا دعا مـحـفـل پــه چې
دی ایـښی صنم راتــه دسـړې مــې مـعـیار دغـه
مـه نــا پــه دافــغــان کې بر لراو یم مشهور چې
دی اېـښـی صنم راته دمـیـړنې لـقـب دغـــــه
ګـرځم غاړه هسکـه سترګې جګی چې موال کا زه
دی ایــښی صــنــم راته پټکې په مې پښتو د ګل

غلام محمد کامه وال

د زړه للمه

# د زړه للمه

د زړه پـه لـلـمه کې مې شین شو جانان
لا خـــو نـور هم راته رنګین شو جانان

خــدا یږو چې نن خو بې جوړې ښکارې
چې شینکی خال دې په جبیــن شو جانان

د رقـــیـــبـــانـــو څـــه پروا لرمه
چــــې مــې د غاړې لونګین شو جانان

مـــــا وی راځـــه چې راترغاړې وځو
جـــــوړ د خندا نه راته شین شو جانان

اوس بـــــه یــــې څـنګه عبادت نه کوم
چـــــــې هـم ستا او هم امین شو جانان

نــور یــــــې د ښکلو بند ګي ګړه غوره
ستا کامه وال هم ستا په دین شو جانان
۱۹۹۷/ماسکو

# غزل

نـــه په هند نه په کابل نه په لاهور یم
د دنـــیـــا غمونو راشي نن په کور یم

زاهـــدان څله توبې راباندې باسې
لـــه ازلـــه شـــــرابي او شرابخو یم

فرعونیان او یزیدان دې ټول خبر شی
لا خو پاتې په دې خاوره دری ځلور یم

بده دا وه کامـــه واله چې هیڅ نه وی
ښه خو دا ده چې د ښـــکلو د پیغور یم

۱۹۹۷

# غزل

څومره چې مینه کې پاګل شې سړی
ئـــــلـــه سړیو کې شامل شې سړی

ما تــــه په مینه کې داغوره ښکارې
دپـــیـــــغورونو چې قابل شې سړی

دقـــربـــانـــې انتخاب ښه وې مدام
کله چه ورک شې نو حا صل شې سړی

قـــسـم په خدای چې بد رنګې نه لرې
په طـــریقت کې چې شامل شې سړی

لندن ۲۰۰۳

د زړه للمه　　　غلام محمد کامه وال

# غزل

د تورې شپې په غیږ کې مې سحر پـــه ژړا شو
د جـانــان خـالي لاسونه مې اختــر په ژړا شو

نـــاوې د رڼـا ترېنه د قاف د ښــوانــو لوټ کړه
د کــلـي شــاړ ګودر ته مـــې ځــیګر په ژړا شو
ما چې په سلګو سلــګــو کــیسه ورته کړه تېره
قـــسـم چـې ټــول مـحفل را سره سم په ژړا شو
چې بیا پکې د پیغلو د بنګړو شرنګا ونه شوه
خـــړي مـازیـــګـري تـه مې ګودر په ژاړه شو
والله کا به چا کړی وي تپوس زمل د اوښکو
دا دومره لـــوی جـــهـان مې ښه خبر په ژړا شو
آه دې پـــــرویـــنـــو نـــنـیـــــو نــــاروا ته
طالــب وکــه مـــلا و پــه مـــمبـــر په ژړا شو
ځـــوکـــه مـــې زړګې ته تسلې ورکړه و نه شو
زمـا پـه ســـوو ســاندو سمه او غر په ژړا شو
نن مې کامه واله په دې وران ویجاړ مالت کې
رېښې رېښې ګریـــوان ته مې دلبر په ژړا شو

د زړه للمه    غلام محمد کامه وال

# شوله د نظره

راته ښکاریږي له نظره شوله
چې قافله مو بی رهبره شوله

که مو تری ډیر سرونه ځار کړه خو لا
خبره تیره هم له سره شوله

کاروان یې وداړه په نیمه لار کې
چې دادنیا پری راخبره شوله

ما خو ګټلی تر اټکه پوري
اوس راته پیښه له ماهیپره شوله

دکوم ظالم ښکاري له لا سه خلکو
دخیال مرغی مې بې وزره شوله

د زړه للمه — غلام محمد کامه وال

# غزل

ګـــوزاره نــه شې اوس  د بنګپه نشو
چـــې امو خته شوم د لونګ په نشو

مــــا تــــه خبری دغیرت کوه تل
زه ښه ښـــــکا ریږمه دننګ په نشو

ډک ډک جــــامونه مې په سر واړوی
پریږ دی چه ښه شمه بد رنګ په نشو

نـــن یــــې مینځم دمحبت په اوبو
له زړګـــــې لری کړمه زنګ په نشو

چیرتــــه دی پوری زیا رتونو باندې
کامه وال ګرځې اوس ملنګ په نشو

د زړه للمه

غلام محمد کامه وال

# دعا

نشته هغه مور چي په رښتيا لاسونه پورته کړي

ماپسي به څوک اوس په دعا لاسونه پورته کړي

د زړه للمه　　　　　　　　　　غلام محمد کامه وال